مظلـــلو مان لکــه باران چي اوريدل به
اوس په نوررولکه ابردکـــوهســــارشو

مهاجر چي زه دلــــــورراودختـــک شـــوم
بي اسري دي زه په سرو رغو کي ورك شـــوم
ســرو غر مو او توروشپو سره ســــــپارلم
تنها پاتي په ميـــدان لکه « شــلك» شــوم «١»

داد مـــخ داوښـــتو کســـان مي نه وو
هم خجل دبي وسي مي زوي ته پلار شو

نه مو کور نه مو خيـــمه ، نه مو بســترۊ
خوندي کړي مـــو له ظلمه فقـط سرۊ
دوطن دپريـــــښودو مـــي چـــاره نوه
دين ناموس ته مي پيښ شوي لوي خطرۊ

مادخـــداي په لسره دي وطن ته مخ کړ
غليم خوښ شو چي دښمن لاړو فرارشو
حوادثو زه په سل کمپو نو خـــــوركړم
بيل له زو يه هم له پلاره هـم له وروړ کړم

(١) دلوگر دپيارو خيلو په دښته کي گو ښي پروت کلي دي

ما ته هيڅ را پاتي نه شو ل غير له خدايه
بي وسي لکه خيمه په ځان نسکور کړم
کړوډي مي په هيواد کي ځوانه شوي
ټول ملت مي ځکه هسي ناکرار شو

مايو عمرپه بيديا او سفر تير کړ
خلکو څه زده چي ماڅرنګ محشر تير کړ
په داخل کي مي دګټو لاندي ژوند و
مه مي پو ښته چي مي څرنګ بهر تير کړ

حو صلي مي صبرو زغم دواړه ځلمي کړل
دغمو چي مي په کور باندي بيګار شو

چي په کورکي دجنت غوندي ويا لي تلي
چي په سيورو دباغچو کي ئي ورځ مي تلي
سره غرمه کي مي ليد ل چي ديو ميل نه
داوبو دڅي دلاندي ئي خولي تلي
کر بلا داکوري مي نه هيريږي
جل وهلي ئي داجل سره کنار شو
بي کسي هم په پردي وطن چه راشي
ژو ند ئي مه بوله دمرګه هم سواشي

زما په ورارو بورو کونهوچي څه تیر شول
پرك به وچـوي که په تيږه باندي راشـي

چي يتـيم ئي ددسـتار او دڅـمر شي
نو دمور په سر ئي تا و دغـم دستارشو

داڅه سـيرو سياحـت نه ؤ چي دلته
راشـم ښاردپيـښور او يائي بل تـه
په ما سـل رنګه لمبـي داور وي بلـي
دبابـل اور ئـي راوړي وه کابـل ته

بتکـده ئي دکـمو ن کنهو کپر کړه
ابراهيم غـوندي مي قوم څکه په نارشو

په کر هاله مـي چي څه را غله خبر ئي
با جوړ ته هـم درواښت محـشر ئي
ماته پاتي دکر هـالي مقـبره شـوه
ستا کر هاله کي مشته شـولږدربدر ئي

زمـا کر هـاله کي دو ينـو سيلابو نه
ستا کرهالي کي داوښکو رو دبـارشو

چي مي ستر گو ديتيم ته چيري گوري
و به ويني پکي ســـل کر هالي نوري
داوطـــن ددرديدلو حـــادثـــو دي
په ماتم ني نن په تن کړه جامي توري

زه به کوم يو درته ښيم چي اعدام شو
زه به کوم يو درته ښيم چي په دار شو

مقـــبره د ه دســـرنـــو هـــره بـــاره
ده خـــوابـــگاه دشهـــيدانـــو هـــره گاره
لږ قـــــدم په احتـــياط په احتـرام ږده
کـــکـــري دي د ســـرپـــو هـــر ه لاره

دافغان په کور کي دومره خلكُ مړه شول
ورك له مرگ دافـــغان دبچـــي پار شـــو

پيـــــښور ه زه بـــــلاؤ کي را گيروم
مصيبت اوواويـــــلاؤ کي را کـــيروم
داچي ستا په کور ميـلمه شوم تر نورروزه
زه دروس په ماجـراو کـــي را گير وم
بوريا بـــه ني دبـــل په تخـــت ور نکړم
که مي ملـــك لـــه حـــوادثو په کرار شو

ستا نه څه پټ کـــړم دکـــور ئي پيښوره
زما دبـــــدي ورځـي وروړ ئي پيښبـــوره
روس چي مات شو امريکا په ځان و يريږي
مخــــکي ربړي لرم نـــوري پيـــښوره

روس که لرشو تري خو ندي مي ټول جهان کړ
امــــريکا ته کـــــوره څه کړي نن ئي وار شو

گيله نکـړم له تـورا نه که لار نه وړي
دامت چي را ســـره کله بار نه وړي
زه له خپلو گيلمن يم چي خپـل وژني
دد ښمن سره پخلا دي تلوار نه وړي

زه چي لوي او څو مره لوړشوم مگرحيف حيف
پـــــه پيـغور چـــي مي بدل هرافتـــخارشو

اوس د« من » زامن پر موړنړه شول ښاغلي
چي سړي ژ هغه مړه شـــول يـادي غلي
دقــدرت دکـــوړاکـــيو نه مـــا يوس يم
دمات شوي دښـــمن مخکي مي چي زغلي

ځان چي غواړي قوم به خــــودداسي سپکیږي
په جهاد درونـد شوي قوم مي څنـــګه خوار شو

چي له تا نه ئي سر و کیش په کابل شــو
دپردو نه ئي لاس و خوت نور پخـپل شـو
آ- اسلام چي دافغان نوم ئي ژونـدي کړ
لدي واړو ئي سوري سوري ګــو ګل شـو

وکم ظـرفي دقــدرت په ورځ شکاریږي
دپــــرون مجاهد څرنګه اشرار شـــو

زه په دام دازمیبنتو نو کي را کـــیریم
زه سپك کړي چي نخوت دهر امـــیر یم
زه بي لاري رهنـــــماو کـــړم بي لاري
زه چـــــیچلي ارادت او خـــپل تد بیر یم

په کتـــلي خپـــل کابل کي اسـیر کړ ځم
هم بد نـــام مـــــي پکي ږیره او دستار شـو
پیـــــښوره زما زخـــمو نه نه جـوړیږي
دانـــــفاق وهـــلي زړو نه نه جـــــوړیږي
دشمـــنان دعقیـــدي مــــــي وائي زړه کي
داســــلام په نام حـــزبو نه نـــه جـوړیږي

داسلام په نامه کار دآزري کا
دعو تګر مي دپرون اوس ټیکدار شو

دلته کوره هر ظالم پکي طرف دی
چي ښه وائي ځان ته هغه بي طرف دی
نن طرف او بي طرف دواړه مجرم دي
چي پکي مي دملت ټول حق تلف دی

دمنطق خبره لاړه زور مطرح دي
چي وژل کا هغه زیات پکي حقدارشو

پیسنوره داخه ژوند دي چي په ماده
په وطن باندي مي بل شان کر بلاده
څوك تري تشتي څوك وردرو مي په تریکو
هك حیران پکښي امي او هم ملاده

بي حیا چي پکي زور وموندہ نوهله
بنده خپله دهوس داقتدار شو

یو ملت مي څوټوټي شو ته ئي شماره
نیم په کور او نیم بي کوره نیم په لاره

ځوك په يو نوم ځوك په بل نو م كرښي كاږي
دتقســـــيم خـــــبره لاړه تـر مزاره

ولـــسوال مي شهنـشاه شو والي څه كړي
پدي مـــلك دګډ وډي كـي كل اختــيار شو

چي تر ټولو ښــــه وژل كا نو جنــــرال شو
چي په مرګ مو رتبي ور كړي دامو حال شو
نه به تــــه وي نه به زه وم كه ســــبا ته
خداي ئي مكړه ځـوك په ديوكي مارشـال شو

ځــو مي دا نــشي اخســتي په خودكيږي
كــنه تير هــم ور سره زمو نږه وار شو

داسلام په نامـه ځـانته كــار و باسي
په حـــيله هـر نــاروا تــه لار و باسي
دا غ ميــخو نه به دي ووهــي په ،سر كي
دا چي ګټي له پښـــودي خــار و باسي

هـــغه كل چـــي داوبو پر ځاي دي ويني
ور كـــولي اوس دستا دلاري خار شو

لوي اسلام مي تـري نه ننگ كا چي په نام ئي
داســـي لو بي رسـوا و كـړي څوك په بام ئي
چـــي په واك كي ئي ښكاره خپل حقيقت شو
او س پو هيږم چي ده كه وه ښـــه مـــرام ئي

دشــــعار فضـل ئي لاړ خلك ئي نا وري
حقــــيقت كي ئي شكاره په اقتدارشو

پيښوره دغه ســـتو نزه به هم حل شي
دادتير غو ندي به بيـــا مي الله مل شي
دازاد افغانستان خوب چي رښتـــيا شو
تير به دور دغـــــه دور دځنـــگل شي

انقـــلاب كي لاندي بانــــدي او ترخي وي
چي دگل مينه مي كړه په لاس مي خار شو
دغه شـــپه به خداي ســبا كا پيښوره
غليمان به خـــداي رسوا كا پيښوره
گيوړي چي څو مره تاوكا باك ئي مكړه
دابـــــه گړ ويتـــول تبـــاكا پيښوره

يه زمـــا دبـــدو ورځـــو كلك مـــلگري
و به گوري شخ دستار كه رون سـهار شو

تا پـــريږدم چي دهجرت دشـــپو ملگريه
ډير خـــفه يم دنكـبت دشـــپو ملـــگريه
په قيامـــت چـي پـلار له زو يه بيزاريږي
زه به ســـــتايم دقيـامت دشپو ملكريه

نه هيـــريږي پيـــښور كله هـــيريږي
ځكــــه مـالره په بـــده ورځ په كـار شو

تـــه زمـــا دشـــهـيدانـــو مقبـــره ئي
ته زما دمـــاشـو مانـــو خـــاطـــره ئي
تازمـــا په ســـر بمـــونو ته تن ور كړ
ته زمـــا غـــورځنگـــونو كـــهواره ئي

پيښـــوره ته خـــو زه او زه خـــو ته يم
يـــو دبل نه چـــي په بده ورځ كي جار شو

تـــه زمـــا دهـــــجرتـــو نو خـاطره ئي
ته زمـــا دعظمتـــــو نـــــو خـــاطره ئي

# مقدمه

دیوه ښار اویا یوه ملت په رابطه شعر او قصیده ویل اوبیا دداسي ښار او ملت په ارتباط چي دکلنو کلنو را هیسي دهغه سره داستعمار په خو له ددښمني او تر بګني مستي تراني زمو نږ په غوږو کي ازانګه کوي څه آسان کار نه دي داګران کار که اسانه کړي هم دي نو دپاکستاني ملت بي کچه ښیګړي آسانه کړي چي زمادملت سره ئي دتاریخ دیوه تور دور په لړ کي تر سره کړه .

زه پو هیږم چي زما دپاره بالذات څو مره ګرانه ده چي ددیورند دي خوا ناخوړلو غوښنو ته پاستي پاخه کړم ولي په پیښور کي زمادملت پتمن ژوند زما ویده شجاعت را ژو ندي کړ تر څو زه هم دیوه بیګانه ملت ښیګړه دبي خبره و کړو ستوغو او پیغورو نو ته تبي نکړم اوداحسان خاوند ته دافغان دشخي شملي په خوله توریالي مننه وړاندي کړم .

دلته ماته پاچاهان په ســـــلامي شول
ته زما دشـــهر تـــونـــو خـاطره ئي

روس مي مات ستا په بازو كړخوددي ستايم
چي منـــكر دي ځوك دښودي ګناهګارشـــو

خداي دي ساته پيښوره زماوطن شوي
زمادډيـرونازولـــو ته مـــد فن شوي
ته چي هر څه يي خو ئي ولي صحرا وي
ستازما دي هسكيرلو ته چمـــن شوي
خداي دي ساته ددي دهر دســـپيرو نه
شاخ ئي مات شه كه په تادكل ګذارشو

زه پو هیږم چي په پیښور باندي به زه پدي نغده مینه دځینو له نظره محاکمه اودځینو نورو له نظره یو بل شان ښکاره شم ولي زه خلکو ته هر رنګ چي ښکارم خو ماته خپله دپیښور رنګ ډیر په زړه پوري دي ما په دي مینه باندي ځکه څوک پړکولي نه شي چي دیوي خوا پیښور زما په سر ډیر ښو نه او دماکي ګاللي اودبلي خوا پیښور دفطرت (لمو نخ او پردي )ښاردي او په دریمه درجه کي هغه ازادي چي دلته لیدل کیږي هغه بي ساري او په زړه پوري ده دأخوپه ځاي پریږ ده چي پیښور هسي دپیښور په خاطردغه مقام نلري ځکه چي افغان داحسان دخاوندانو پاس نه شي هیرولي .

ماته که پیښور ددي وړ ګرځیدلي چي دمره زړه پري و بایلم نو ما چي کابل پریښود نو طهران مي ولید او ریاض هم . هغه تهران چي زمایو نیم ملیون بي کوره یي دکمون دشره ۱۵ کاله خوندي کړل اوهغه ریاض چي په هر کور کي ئي زما دیتیمانو مقرره کومك میاشت په میاشت بیلیږي ولي ددي سره سره هغه معامله چي په پیښور کي دمهاجر افغان سره شوي دهغي حق زما دغه نیمګړي قصیده هم نه شي پوره کولي او هغه دتاریخ بي ساري میلمه پالنه ده .

د سیاسي اختلاف او خواددري ملیونه
مهاجرینو په خو ندي کولو کي دهر پیښوري برخه یقیني ده
او پدي باب چي چا زیاته پا لنه کړي هغوي به دکمي پالني
دخاوندانو په باب زمو نږ دمنني څخه زړه نه تنګوي چي که
ښه هر څو مره کم هم وي خو ښه دي ولي کیسه لنډوم چي زه
پیښور ددي واړو اوچت ګنم او پدي کي زما خبر او شکریه
هغه د کوڅي عام پیښوري او پاکستاني ته متو جه ده چي
ددري ملیونو په پنځلس کلنه ملمیستیا کي تندي غونځي هم
و نکړي او که نه زه کله د کابل دکمو نستانو خبر په ځان
اخلم چي هغوي ووائي چي پدي کار زه دبیګانه ؤدپاره چوړ
پرکو م . خو زه ... زه چي چا د خپلو بچینانو سره په توره
شپه دکوره وایستلم هغه هم پیژنم اودغه دډیورند دي خوا
مسلمان هم ښه پیژنم چي پوره نیمه پیړي مي د روس په
لمسه هغه ته دبیګانه په ستر ګو کتلي ولي هغه زما په بده
ورځ دا دخپلو سرو دو ستانو په ظلم جنه ورځ په کار ... او
ښه په کار راغلل.

کیداي شي اوضاع عوض شي ... په افغانستان کي
هم او ضاع بل رنګ واخلي او دلته هم . حکو متو نه خو
اوس امریکا جوړوي مخکي روس اوامریکا په دواړو.
کیداي شي راتلو نکي حکو متو نه دغه دو ستي خداي
مکړه په دښمني بدله کړي ... کیداي شي دمهاجرینو نه یو
هم دلته پاتي نه شي ... دکمپ خبري ختمي شي ... را

تلو نکي نسل داخاطره له یاده و باسي ... او ضاع نوي رنگ واخلي او بي پاسي خوا ولاړه شي ولي پدي ابتدائي قصیده غواړم دپاکستاني ملت شل کلن پور په همدي ځاي پري کړم تر څو داقصیده ددي دواړو ملتونو ددوستي او ورورولي ددوام دپاره یو بل سند شي .

زه خپله په پیښورکي ډیر کم اشنایان لرم طبیعتاً دخلکو سره ئي خلطیت نلرم ولي زما دملت سره ددي خلکو ښتنولي اواسلامي رویي زه پدي کرښه ودرولم او تر څو ژوندي یم دپیښور او پیښور یانو یاد به زما په زړه کي ژوندي وي .

مزمل ۱۳۷۲/۸/۱۲

# د پیښور یاد

پیښورکه مي دمیني یکته ښار شو -   ځکه مالره په بده ورځ په کـــار شو
مدیني په شان ئي ماله پـــناه راکړه  - هر وګړي مي بي کوروته انصارشو

دکمون خبر چي هلته کي په زور شــوه
په ما خپله خاوره تنګه لکه ګـــور شــــوه
ما مي خپل او خپل وطن په ژړاپریښــول
تیکه ماته په وطن کي نور پیغـــورشـــوه

تا ته راغلم پیښوره ستـــا ملـــت هم
زما له هره کړیــــدلي په تن زار شو

زه بي کوره دي په کورکړم،کور دي راکړ
پـور وړي درته راغلم پــــوردي را کـــړ
ځنګـلونو او بیدیـــاو دي پــــه آب کړم
کور دي راکړ اور دي راکړ ګوردي راکړ

زما بچي هم ســـتادښو دي پوروړي
پاس دي پيټي اوس زما داوړو بارشــو

تاته راغـــلمه دليـــريو لارو ستړي
پســـي لو ځي لمرو هـــلي لـکه مړي
نه مي کور ؤنه مي کار ؤبيـــخ ختـلي
دصـــحرا کرڼو و هـــلي ژرنده کړي

تا په کورکړم تا په کارکړم ټول ملت زما
ســتا په ميـنه دعــزت او دروزګــار شو

زه پردي وم خــوتاخپـــل کړم پيښوره
مسا فر دي پـه کابـل کړم پيـــښوره
ما پرون چـــي په تـروه ټنـــــډه رټلي
تا په هغه ټنډه ښـــکل کړم پيښــوره

نن چي ستايم خوددي ســتايم مګـــرواوره
خداي دي ســـاته او کـــه نه نوزماوار شو

زه چي ننګ داسلام واخستم پښــتون شوم
توره شپه مي وطن پريښوده بيــرون شــوم

سل شوم زرشوم دهجرت په نوي ساه کي
زه مليون شومه له عزمه څو مليون شوم
څکه تنګه شوه په ما خو زه پاړه تلم
پيښورته چي زما دويم ديارشو
په بمو نو مي کلاوي سر نګون شوي
ستا صحراوي په ماړکي چي پرون شوي
هلته ستړي زما له تا چي تاويدل به
دست غيب زما درغنده بدلون شوي

اوس چي خپل کبر په نيمه لار کي خوار کړم
انقلاب زما دبرم خوارو زار شو

که دروس سره په نره زه په جنګ شوم
جنګيالي دزماني دنام و ننګ شوم
ناشکسته روس سر ماتي ماتي و کړه
دخوشحال په اند چي زه ئي سرپه سنګ شوم

دالو ئي او فخر هلته مي نصيب شو
چي مي بال و بڼ په تاکي په کرار شو

زه دنورو غو ندي نه وايم چي جنګ کي
ما ور کړي زر او سردستا په ننګ کي

جنګ زما ؤ ته مي ودریــــدي په ننـــګه
روس که وتښ ته لا يي زما په څنګ کي
دوحشـــت شـپه مـي په تا با ندي رڼا شوه
دوســت هغه دي چي په بده ورځ په کار شو

مســافر نه وم میلـــمه وم د لتـــه کي زه
زه دکور په شان دمه وم د لـــتـــه کي زه
ټول ملـــت زما په خـــپله میـلمه پال ؤ
که هـر څـــو پاره جــامه وم ذلته کي زه

«پاك ملت» ماته په زړه کي چي ځاي زاکړ
نو په پاك دنعـــمتو نـــو بـــیرو بارشو

پیښوره ماته ګر ان لـکه خپـل خـــاك ئي
دمه ځاي چي« دافغان »او هم دپـــاك « ئي»
تو ریالي دي دتاریخ چـــه میلمـــانه کـړل
ته په سترګو کي ازغي دهـــر ښکیـلاك ئي

دتاریخ دلوي هجـرت کیـــسه دي ویـوړه
ا فتخار ئي ستا په سـر لکه دســتارشو

مهاجر دستا دکور به پښتانه شي
په عزت به خپلي خاوري ته ستا نه شي
مخه ښه ورته په زور وایه انصاره
چي په بده مي خوشحال دي چي کانه شي

آچي ماته به ئي کتل اوهم ویل به ئي
بارشو داپيټي زمو نږ داوږو بارشو

داځه لر عمر خو نه ؤ پيښوره
دشیدو ماشوم مي هم و کره دغره
په هر(اړکي) دي بدل کړل ما پو ستو نه
دهمت کیسه مي و لوله ژوره

ماددين په خاطر شاکړله کابل ته
په استان دي دستانه ؤ بیرو بار شو

تا ته زما کیسه له هر چاده څرګنده
تول دستاشوو تر تخاره تر هلمنده
ماشو مان او بو ډاکان مي تاتر خوا کړل
طیارو چي زغلول کنده په کنده

# د پېښور یاد



محمد زمان « مزمل »

# اهداء

د "پیښور یاد" قصیده د خیبر
درانه او قدر من ادیب
امیر حمزه شنواري
ته اهداء کوم.
هغه چې د لوړکې د هسکو ئې
زما د هسکیرولو د بهیر ننداري
شاعري ورکنګل کړه.

شکریه :

د قدرمن قاضي صاحب وقاد نه
مننه کوم چې د پیښور یاد رسالې
په طبعه کې ئې ماسره د پیښور
او پیښوریانو په یاد کې ځان
شریک کړ.